تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# فی

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

تحریر و ترتیب

سید محمد ثواب

ابن سید اکاخیل باباصاحب

دوسرا حصہ

ناشر

مدرسہ حدیقۃ الاحناف

Scanned by CamScanner

# مسئلة ايمان أبوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

## التحقيق في ايمان أبوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ الَّذِي يَرَاكَ حِينَ تَقُومُ وَتَقَلُّبَكَ فِي السَّاجِدِينَ﴾ الشعراء.

بله مسئله د ايمان أبوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې زير بحث يې ګرځوو د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والدين يا د دوي نسب نو دا والدين يې په ايمان باندې وه که په کفر باندې وه که په فترة باندې وه مسئله نزاعي ده خو اوس نه ده له اسلافو نه دې کې اختلاف شوې دې يو جانب لاړ قول ته چې: انهما ماتا على الكفر.

دويم قول دادی چې: انهما ماتا على الفترة، دوي په زمن د جاهليت کې مړه دي او د زمن د جاهليت باره کې علماء د عقائدو چې اشاعره ماتريديه دي دوه ډلې شوې دي.

کومه زمانه کې چې پيغمبر مبعوث نه وي زمانه د فترة د وحي وي د اشاعره وو رايه داده چې:

الهم مغفورون مالم يصرح منهم بشرك. کوم سړي نه چې د شرک ثبوت نه وي او زمانه د فترة د وحي کې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هلته مبعوث نه وي دې مړ شي په رايه د اشاعره وو باندې دا مغفور دي ځکه هغوي هغې نه دليل پيش کوي چې: ﴿وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّى نَبْعَثَ رَسُولًا﴾.

نو تعذيب يې غايه کړه تر بعثت د رسول که بعثت د رسول نه وي نو تعذيب نشته نو چې تعذيب نشته مغفور شو.

د اشاعره وو دا استدلال دي چې زمانه د فترة مکه معظمه د غلته پيغمبر نه وه رااليږل شوې په دې آيت کريمه کې چې سورة ياسين کې راځي: ﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّا أُنذِرَ آبَاؤُهُمْ فَهُمْ غَافِلُونَ﴾.

دلته ډير تاويلات دي خو معروف تاويل دادی چې ما دې نافيه شي ﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا﴾

چې ته ويروي داسې قوم ﴿مَّا أُنذِرَ آبَاؤُهُمْ﴾ چې پلاران يې نه دي يرولې شوي يعنې دوي ته رسول نه ده راغلې .

او يا ما موصوله ده : ﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا الذي أُنذِرَ آبَاؤُهُمْ﴾ هغه چې د چا پلارانو ته انذار شوې دي بيا هغه بعيد پلاران مراد دي چې اصل د دوي کې ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام اسماعيل السلام هغه زمانه کې تير شوې وه کنه هغه به مراد شي .

اشاعره وايي چې د فترة زمانه کې څوک مړه شول تصريح د کفر ترې وه کافر که نه وه مغفورين ما تريديان وايي چې زمانې د فترة والا خلک که کفر ترې نه ثابت شول کافر که کفر ترې ثابت نه شو نو بيا غير مغفور غير معذب څه مغنی يعنې مونږ به سکوت کوو د هغوي په حق کې امر به يې مفوض الى الله کړو مونږ به فيصله د مغفوريت هم پرې نه کوو او فيصله د تعذيب به هم پرې نه کوو داد ما تريديه وو رايه ده .

نو يو قول ابوي النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې د اسلافو نه راپاتې دادی چې :

انهما ماتا على الكفر .

دويم قول ترې نه دا مروي شو چې :

انهما على الفترة . زمانه د فترة کې مړه دي دا خو يقيني خبره ده چې بعثت د رسول عَلَيْهِ السَّلَام نه وه شوې دوي مړه دي چې مړه دي نو من اهل الفترة شو چې من اهل الفترة شو چې من اهل الفترة شو نو اوس اشاعري ځان نه جوړوي که ما تريدي جوړوي که اشاعري ځان نه جوړوي چا نه چې کفر ثابت وي عند الاشاعرة زمن د فترة معذب چا نه چې کفر ثابت نه وي مغفور .

والدينو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه د کفر ثبوت وبنايه آميني بي بي نه وبنايه د عبد الله صاحب نه وبنايه بنودې شي د کفر ثبوت څوک ترې نه کوم حديث منکرين څوک چې د ماتا على الكفر قائل دي هغوي سره په دې څه حديث شته دي څه سند دي تاريخي واقعه شته دي چې عبد الله صاحب چې يا يې د بوت په وړاندې حلاله کړې يا يې بوت ته سجده کړې وي يا يې بوت نه استمداد غوښتې وي يا هغه څيزونه چې هغه زمن کې د مشرکينو مکه وو رواجات وه ده کړې دي يا د اميني بي بي نه ودې ښايي څوک په تاريخ کې چې نه شي ښودلې په نزد اشاعره

مغفور شو او په نزد ماتريديه وو باندې هغوي وايي که ثبوت د شرک وي مشرک ثبوت د شرک خو ترې نه ، نشته او چې ثبوت د شرک نه وي سکوت نه به يې معذب ګڼي او نه به يې مغفور ګڼي داد احنافو اصل دي .

د ماتريديانو چې آيا يواځې په عقل مواخذه شته که نشته اشاعره وايي چې بعثت د رسول نه وي مواخذه نشته او احناف او ماتريديان وايي که کوم ځای بعثت د رسول نه وي په عامو شرائعو کې مواخذه نشته دي تشريعي اسلامي فرعي جزي مونځ زکواة کې مواخذه نشته ولې په وجود باري تعالی کې که ده عقلاً نه وه ثابت کړي بيا مواخذه شته .

دا خو په اصولو کې هم راځي چې کوم ځای کې پيغمبر بعثت نه وي شوې او يا يو چاته پيغام د توحيد نه وي رسيدلې هغوي په عقل مواخذه کيږي عند الاحناف و ماتريديه دا دويم قول شو .

دويم قول کې د ماتريديانو تفصيل بيا څه دي ماتريديان وايي چې څه فيصله د عذاب او د جهنم او د جنت پرې نه شي کولې ته په ساکت يې ، نو دوي سره به څه کيږي په ورځ د قيامت نو اشاعره وايي چې شرک ترې ثابت نه دي من اهل الفترة دي نو مغفور دي جنت ته به ځي او ماتريديان سکوت کوي نه فيصله د جنت نه د جهنم نو څه به کيږي له ده سره نو ماتريديان وايي چې دوي به په ورځ د قيامت ممتحن کړې شي باري تعالی به من اهل الفترة خلک چې بعثت د رسول ورته نه وي شوې محضرِ عام کې به او دروي هغوي نه به تپوس وکړي : ﴿أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾ چې دوي څه وايي که وي ويل ﴿بَلَىٰ﴾ جنتيان که وي ويل چې لا جهنميان ممتحن به شي .

نو چې چا باندې د قبر دا حالات تير شي او دا ټول هر څه په سترګو مشاهده کړي او زمونږ دا چې قيامت موجود ده مسئله زمونږ د علم اليقين ده او هغوي دا په عين اليقين او د قيامت په ورځ را پورته شي درجه د حق اليقين کې ورته ثابته شي انکار به وکړي بيا هيڅ کله هم انکار نه کوي .

بيا زمونږ ګمان په والدينو د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم به څه وي چې ورځ د قيامت به د هغوي نه تپوس وشي نو هغوي به څه فيصله کوي بيا زمونږ دا يقين دي چې هغوي به وايي : ﴿قَالُوا بَلَىٰ﴾ دا زه خپله خبره نه کوم يوسف بن اسماعيل نبهاني رحمه الله په حجة الله البالغة

على العالمين کې استدلال چې کوي دې ځای نه کوي چې ماتردیان یې ممتحن ګڼي او زمونږ دا ګمان نه چې یقین دي چې والدین د نبي عليه السلام که ممتحن شي کامیابیږي به.

دریم قول: هغه دادی چې:

ماتا على الكفر ثم احياهما الله تعالى وآمن بالنبي صلى الله عليه وسلم.

په کفر مړه شوې وه بیا خدای تعالی ژوندي کړل په نبي اکرم صلى الله عليه وسلم یې ایمان راوړو اسلافو کې دې دري واړو اقوالو ته علماء ذهاب کوي.

څلورم قول دادی:

التوقف. بس دې نه سړي غلي پاتې شي هیڅ یې ونه چیړي.

خو که مخالفینو نه چیړلي نو مونږ به هم نه چیړلي مونږ دوي مجبور کړو دې خبرو ته یعنې زما خپله رایه دې مسئله کې توقف ته رسیدلې ده چې باید سړي غلي پاتې شي نه هغه جانب کې څه ووایي او نه دې جانب کې څه ووایي ځکه چې مونږ نه خو رب کائنات ددې تپوس نه کوي چې تا والدینو د نبي عليه السلام ته کافر ویلې وه که نه دې وه ویلې او تا ولې کافر ورته نه دي ویلې.

نو اخراج المؤمن من الدين وادخال غير المؤمن في الدين عظيم في الدين. نه به غیر مؤمن في الدين داخلوي او نه به مؤمن د دین نه خارجوي دواړه جانبه کبیره ده توقف ډیره ښکلي رایه ده که د چا عقیده ایمان ته ورځي بس مؤمنین دي که ایمان ته یې عقیده نه ورځي څه ډیر کتابونو عبارات خو د ایمان خوا ته ترجیح ورکوي.

خو زه وایمه د خلکو د پاره عوامو او طالبانو ته زما تلقین داده چې غلي پاتې شي له دې نه که عقیده مو ایمان ته جوړیږي رایې ولي خو زما خپله عقیده د ایمان ده زه وروسته عبارات ذکر کوم تاسو سوچ وکړي أميني بي بي ته صحیح روایاتو نه ثابت دي چې دې د نبي عليه السلام د خروج په وخت کې نور کتلې دي دا رؤیت د نور دا په سترګو ظاهري نه وو دا په کشف باندې وه کشف مشرک ته څنګه ثابت شو.

دا هره شپه مختلف خوبونه کتل او فرښتې په مختلف شکل دې ته راتلل مشرک ته څنګه دا حالات ثابت شول نو بي بي آمینه د نبي عليه السلام د ولادت په وخت کې ارهاصات او عجائبات حالات کتل.

دا ټول دلائل د دې دي چې دا بنفسه د اهل الفترة نه وه مونځ او په نورو احکامو مکلف نه ده خو نور د يو قوي ايمان خاونده وه دې خالق پيژندلو چې دا حالات دې ته ثابت شوي دا څلورم قول شو.

د دې امت محدثينو او فقهاو کې زيات علماو توقف ته تللي دي دا مسئله نه چيړي څو مره تاريخونه چې وکتل شي مؤرخين دا مسئله نه را اخلي محدثين يې نه را اخلي دا زمونږ فقه حنفي کې سوا د حاشية رد المختار نه نور يو فقيه يې هم نه را اخلي سره دا مسئله چيړي هم نه پريږدي يې ولې توقف کوي په دې باب کې.

زه خپلو دلائلو ته راځمه او دري طريقې د استدلال به کومه د هغه چا استدلال به کومه چې ماتا على الكفر او د هغې نه چند جوابونه او هغه استدلال چې ماتا على الفترة او هغه استدلال چې احياهما الله تعالى.

يو قول پنځم هم شوې دي هغه دا چې ابوين د نبي عَلَيْهِ السَّلَام څه چې ټولو نيکونو تر آدم عَلَيْهِ السَّلَام پورې نسب کې مشرک نه دي راغلي دا قول تفسير بحر محيط او تفسير کبير د رازي منسوب کړې دي الى الروافض وايي دا د شيعه گانو رايه ده.

خو تفسير روح المعاني په دې باندې دلائل ويلې دي او بيا يې ويلي چې د امام رازي دا خبره چې دا د شيعه گانو قول دي دا د تتبع او تلاش نه دي کړې دا وايي قلة د تتبع د ده دې کوشش يې نه دي کړي دا د شيعه گانو قول نه دي.

زه وايمه چې چا ويلې د شيعه گانو قول دي صحيح ده خو شيعه گانو دې هم کړې وي د اهل سنتو نه دي هم څه علماو کړې وي خو دا خو د شيعه گانو بنيادي مسلک نه دي کنه چې شيعه هغه څوک دي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام والدينو ته مؤمن وايي دا خو اهلسنت هم ورته مؤمن وايي دا د شيعه گانو اصولي اجماعي عقائد خو نه دي.

اوس په يوه جزيه کې شيعه له يو چا سره شو مثال بطور په مانځه کې لاسونه زوړند نيول په سرة تحت السرة فوق السرة نه اينبو دل دا د شيعه گانو مذهب يوه جزئي فروعي مسئله ده کنه دا سې خو نه شوه چې چا زوړند لاس ونيولو نو شيعه دې اصولي عقائد خو نه جوړيږي امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ هم دا رايه لري.

جمع بين صلاتين د وهابيانو د شوافعو او د امام احمد صاحب مذهب دي شيعه ګان هم د جمع بين صلاتين قائل دي اوس دديې خو دا معنى نه شوه چې څوک جمع بين صلاتين کوي شيعه به وي .

نو دغه شانته ابن تيميه هم دا نسبت کړې دي بحر محيط تفسير هم کړې دي تفسير الرازي هم کړې دي چې قول د ايمان په تمام اباءاو اجدادو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا روافضو ته منسوب دي محمود آلوسي رَحِمَهُ الله پرې غصه شوې دي وايي دا دوي تلاش نه دې کړي دا غلطه خبره ده بلکې جمع غفير من اهل سنت په دې قائل دي چې ټول اباء اجداد يې مؤمنان دي دې کې څوک نه دي تير شوې چې مشرک وي دليل د حديث نه پيش کوي هغه دا چې :

لم ازل أنقل. نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي چې هميش ومه زه چې راتقليدمه .

من أصلاب الطاهرين إلى أرحام الطاهرات .

زه له اصلابو شاګانو د طاهرينو نه را روان ومه او ارحامو د طاهراتو ته نقليدمه تر دې چې د خپل مور او پلار نه زه رابښکاره شومه .

دې ځای نه استدلال کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام خپل اجدادو ته طاهر ويلې دي او رب کريم فرمايي :

﴿ إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ ﴾ مشرکين نجس دي .

دا نجس د طاهر متضاد دي هغه وايي زما نسبت ټول طاهر راغلې دي او که څوک ورته مشرک وايي نجس به ثابت شي .

خو يو اعتراض پرې کيدې شي چې د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام پلار آزر وه په نص قرآني کافر وه نو په هغې محمود آلوسي زيات زور لګوي چې هغه يې تره وه پلار يې نه وه هر چې پلار دده وه هغه طارق نوميده هغه مشرک نه وه .

مخکې له شروع د اقوالو د محدثينو له استدلالاتو نه د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله يو قول فقه اکبر کې چې معروف دي چې :

والدي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماتا على الكفر .

دې ځای نه ثلاثه آئمه محدثين هيڅ نه هم دا سې قول منقول نه دي سوا ابي حنيفة

رَحِمَهُ اللَّهُ دده نه منقول دي.

دده د خبرې نه جواب په طريقينو باندې كيږي يو جواب منعي دي هغه شاه انورشاه كشميري رَحِمَهُ اللَّهُ په فيض الباري جلد ١ صفحه ٧٩ كې ذكر كړي :

**ما نسب الى الامام الاعظم في الفقه الاكبر فالمحدثون على أنه ليس من تصنيفه.**

امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ ته چې كوم نسبت فقه اكبر كې شوې دي محدثين دې باندې قول كوي چې فقه اكبر د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ تصنيف نه دي.

دا منعې جواب دي چې هر كله د هغه تصنيف نه شو نو دا نسبت هغه ته صحيح نه شو

**ماتا على الكفر** دي راغلې وي دده قول نه دي.

**بل من تصنيف تلميذه ابو مطيع البلخي.** دا دده د شاګرد ابو مطيع بلخي تصنيف دي.

**وقد تكلم فيه الذهبي انه جهمي.** او دې شاګرد باره كې امام ذهبي قول كړې چې دا جهمي وه.

**اقول ليس كما قال.** زه وايمه چې د جهمي نسبت ورته بنه نه دي.

**لكنه ليس بحجة في باب الحديث.** باب د حديثو كې دليل نه وه.

**وقد رأيت عدة نسخ الفقه الاكبر فرأيتها كلها متغائرة.** ما د فقه اكبر ډيرې نسخې وليدلې ومې ليدلې چې ټولې متغائره وي الفاظ په كې جدا جدا وه.

دا هغه دويم جواب ته اشاره ده اول جواب دا چې فقه اكبر د امام صاحب تصنيف نه دي كه څه قول پيدا شي دا الزامي حجت په احنافو نه دي.

دويم قول دا دى چې نسخې د فقه اكبر متغائرې دي ابو المنتهى كې چې دا عبارت راشي تاسو پر حاشيه وګورئ حاشيه كې وايي چې ما يوه نسخه قديمه د فقه اكبر وليدله چې په هغې كې دا الفاظ وه :

**ما ماتا على الكفر.** ابوين د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په كفر مړه نه دي.

شاه انور شاه صاحب دې ته اشاره كوي :

**رأيتها كلها متغائرة.** ما نسخې وليدلې ټولې متغائرې وي يو كې وايي :

ماتا على الکفر. بل کې وایي:

ما ماتا على الکفر.

تائید ددې نسخې دادی چې د فقه اکبر بنه شرحه ملا علي قاري لیکلې شرح فقه الاکبر په احنافو کې سر سخته قائل د تکفیر د ابوي النبي عليه السلام هغه ملا علي قاري دی چې ده پرې رساله لیکلې ده:

**معتقد أدلة أبي حنيفة في أبوي الرسول** صلى الله عليه وسلم. دا یې نوم دی عقیده او دلائل د امام ابو حنیفه رحمه الله په تکفیر د ابوي النبي صلى الله عليه وسلم کې.

نو چې هر کله د ملا علي قاري قوي رایه دا وه او په دې کې اولین استدلال یې د خپل امام نه کوه تاسو شرح فقه اکبر وګورئ په شرح فقه اکبر کې دا الفاظ نشته چې **ماتا على الکفر** نه په کې ماتا شته نه پکې **ما ماتا** شته که دده په نزد باندې دا نسخه وای چې کومه نسخه کې **ماتا على الکفر** دي په کار دا وه چې ده شرح کړې وای ځکه دې خو قائل ددې خبرې وه یوه نسخه داسې ده چې هغه کې بالکلیه دغه عبارت نشته نه ماتا شته نه ما ماتا شته دا هغه نسخه ده کومه چې په شرح فقه اکبر کې پرته ده ځکه که دا شرحه اول نه آخره پورې وکتل شي مسئله د **ماتا على الکفر** په کې بیخي نشته دې نسخه کې بیخي دا جزیه نه وه هغه زمانه کې خو دومره چاپ خانې نه وې چې بله به دې را اخیستې وې خو په تتبع او تلاش به چیرته یوه قلمي نسخه پیدا شوه.

ملا علي قاري چې کومه نسخه پیدا کړې هغې کې نه **ماتا** او نه **ما ماتا** شته یوه نسخه چې اوس معروفه ده هغې کې **ماتا على الکفر** دي.

یوه نسخه بله ده کومه چې ابو المنتهى محشي پرې استدلال کوي هغې کې دي **ما ماتا على الکفر** نو یا خو د شاه انور شاه صاحب قول دی چې د آدابو مطیع تصنیف دی داد امامنا تصنیف نه دی قول یې څه الزام نه شو یا که د هغه تصنیف بالفرض شي هم نو بیا دې نسخو کې اختلاف دی.

استدلال د هغه جماعت چې هغوي وايي تول اباء اجداد طاهر دي :

اما رازي رحمه الله هم دې ته ذهاب کړې دي او د محمود آلوسي رحمه الله رایه هم دې طرف ته میلان لري استدلال د سورة الشعراء ۲۱۷ آیت نه کوي :

﴿ الَّذِي يَرَاكَ حِينَ تَقُومُ ﴾ الله هغه ذات دي چې گوري تا کله چې ته پاڅې .

﴿ وَتَقَلُّبَكَ فِي السَّاجِدِينَ ﴾ اى وحين تقلبك في الساجدين وگوري تا په تقلب ستا په ساجدينو کې .

زاد المسير في علم التفسير جلد ۵ صفحه ۱۲ :

اى وترى تقلبك في الساجدين . ددې ترجمه کوي درې اقوال را اخلي :

أحدها : وتقلبك في أصلاب الانبياء حتى اخرجك . کله چې تاسو په شاگانو د انبياء کې را روان وي هغه وخت پورې چې تاسو يې د خپل مور بې بۍ نه راویستې دغه وخت پورې اله العالمين فرمايي ته مونږ کتلې زمونږ په حفظ کې وې .

دا روايت د عکرمه دي عن ابن عباس رضي الله عنه زاد المسير منسوب کړې عکرمه لره دي ما چې تفتيش او تلاش وکړو نو دا روايت د عطاء دي عن ابن عباس .

الثاني : وتقلبك في الركوع والسجود والقيام مع المصلين في الجماعة . دا جمعه کې چې ته اوړې را اوړې رکوع ته سجدې ته بنکته پورته کيږې دې وخت کې دې مونږ گورو معنی یې دا شوه :

يراك وحدك ويراك في الجماعة وهذا قول الاكثرين منهم قتادة .

الثالث : وتصرفك في ذهابك ومجيئك في اصحابك المؤمنين .

تقلب يې په معنى د تصرف که دا د حسن بصري قول دي همدغه عبارت الدر المنثور في التفسير بالمأثور للسيوطي جلد ۱۱ صفحه ۳۱۷ کې ذکر کړي :

واخرج ابن ابي حاتم وابن مردويه وابونعيم في الدلائل عن ابن عباس في قوله ﴿ وَتَقَلُّبَكَ فِي السَّاجِدِينَ ﴾ قال ما زال النبي صلى الله عليه وسلم يتقلب في أصلاب الأنبياء حتى ولدته امه كذا ذكره تفسير ابن ابي حاتم جلد ۹ صفحه ۲۸۲۸.

تفسير البغوي جلد ٦ صفحه ١٣۴، الكشف والبيان عن تفسير القرآن جلد ٧ صفحه ١٨۴.

التفسير الحديث جلد ٣ صفحه ٢٧٠، تفسير السلمي جلد ٢ صفحه ٨٣.
تفسير حقي جلد ٩ صفحه ۴٩٧، المجالسة وجواهر العلم جلد ٨ صفحه ١٨٥.
معجم ابن الاعرابي جلد ۴ صفحه ٢١٢. تائيد ددې روايت كوي :

واخرج ابن مردويه عن ابن عباس قال سألت رسول الله صلى الله عليه وسلم فقلت بأبي انت و امي اين كنت و آدم في الجنة. تاسو چيرته وي چې آدم عليه السلام په جنت كې وه.

فتبسم حتى بدت نواجذه ثم قال إني كنت في صلبه وهبط الى الارض وأنا في صلبه وركبت السفينة في صلب أبي نوح وقذفت في النار في صلب ابي ابراهيم.

ولم يلتق ابواي قط على سفاح. زما نيكونو كې څوک زنا والا نه دي راغلې.

لم يزل الله ينقلني. هميش وه خداى تعالى چې زه يې رانقلوم.

من الأصلاب الطيبة الى الارحام الطاهرة. د شاګانو پاكو نه ارحامو طاهرو ته.

مصفى مهذبا لا تتشعب شعبتان. هر ځاى كې داسې دوه ډلې نه دي جوړې شوې يو پلار دوه زامن نه دي جوړ شوې.

الا كنت في خيرهما. مګر زه په خير كې راغلي يمه يعنې غوره كې راغلي يمه.

استدلال دلته دي ځاې نه ده: الا كنت في خيرهما.
او مشرک كافر ته د خير نسبت نه شي كيدلې.
او بل دې ځاى نه استدلال كيږي:
ينقلني من الاصلاب الطيبة الى الارحام الطاهرة.
او طاهر مشرک نه شي كيدلې.
انما المشركون نجس. هغوي نجس دي هغوي ته د طاهر نسبت نه شي كيدې.
د اول قول قائلين چې دا اصلاب ټول پاک دي هغوي له دغه ايات نه استدلال دي.

دا چې مُضرحًا چا پرې اخذ کړې دي ، مفاتيح الغيب للرازي تفسير کبير دي جلد ۱۳ صفحه ۳۳ ، دا احتمالات خو په کې راغله دري او ده تقريبُ پنځه جوړ کړې دي وايي :

لفظ الآية محتمل للكل . دټولو احتمال لري .

فليس حمل الآية على البعض اولى من حملها على الباقي . دا نه ده چې په بعضو حملول يې له بعضو نه اولى دي ټول احتمال لري .

فوجب أن نحملها على الكل وحينئذ يحصل المقصود .

نو مقصود يې څه شي دي ايمان اجداد النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

ومما يدل ايضاً على أن أحدا من اباء محمد عَلَيْهِ السَّلَامُ ما كان من المشركين .

نو دليل دد ې به شي چې اباء د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ يو هم مشرک نه وه دليل پرې :

قوله عَلَيْهِ السَّلَامُ: لم ازل أنقل من أصلاب الطاهرين الى الأرحام الطاهرات .

ګورئ دا حديث يې دليل کړو :

وقال تعالى : ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ﴾ التوبة ۲۸ .

وذلك يوجب ان يقال . دا قول واجبوي چې ويلې شي :

ان احدا من أجداده ما كان من المشركين . يو دينكو نو نه يې هم مشرک نه دي تير شوې .

اذا ثبت هذا فنقول ثبت بما ذكرنا أن والد ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ما كان مشركاً . هغه هم مشرک نه وه .

وثبت ان ازر كان مشركا .

که څوک وايي چې دا خو ثابته ده چې ازر مشرک وه .

فوجب القطع بان والد ابراهيم كان انساناً آخر غير آزر . هغه طارق وه پلار د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ او آزر يې کاکا وه تره يې وه .

او که څوک اعتراض وکړي :

﴿إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ﴾ دلته خو أب راغلې دي .

نو جواب به دا وي د قرآن کریم اصلاح کې تره ته أب ویلې کیږي لکه اوله سیپاره کې راځي :

﴿مَا تَعْبُدُونَ مِن بَعْدِي قَالُوا نَعْبُدُ إِلَـٰهَكَ وَإِلَـٰهَ آبَائِكَ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ﴾

یعقوب عَلَيْهِ السَّلَام ته دا وایي ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام خو یې نیکه وه ځکه پلار شو اسحاق عَلَيْهِ السَّلَام یې پلار وه نو پلار شو اسماعیل عَلَيْهِ السَّلَام یې تره وه .

﴿إِلَهَ آبَائِكَ﴾ أب ورته ویلې شو .

یا دویم دلیل پرې هغه حدیث دي نبي عَلَيْهِ السَّلَام وایي چیرته دي پلار زما .

علي بي ابي . پلار راته راولي خلکو ورته حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوستلو ورته یې کینولو هغه دې تره ته وویل شو په اصطلاح د حدیث کې .

دا اول قول شو ګوري امام رازي رَحِمَهُ اللهُ دې طرف ته میلان لري .

یوسف بن اسماعیل نبهاني رَحِمَهُ اللهُ هغه وایي چې د اول قول قائل امام رازي دي نو امام رازي خو شیعه نه وه له اهل سنت نه وه .

چې اجداد د نبي عَلَيْهِ السَّلَام مؤمنین وه .

تفسیر روح المعاني جلد ۴ صفحه ۱۸۴ :

والذي عول علیه الجمع الغفیر من اهل السنة . هغه چې په هغې اعتماد یوې لوي ډلې د اهل سنت کړې دي هغه دا چې :

أن آزر لم یکن والد ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام . آزر والد د ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام نه وه .

وأدعوا أنه لیس في أباء النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کافرا اصلاً .

دعوی یې داده چې اباء د نبي عَلَيْهِ السَّلَام کې بالکلیة کافر نه دي راغلي .

لقوله عَلَيْهِ السَّلَام: لم أزل أنقل من أصلاب الطاهرین الی ارحام الطاهرات والمشرکون نجس .

همغه دلیل پیش کوي .

وتخصیص الطهارة بالطهارة من السفاح لا دلیل له یعول علیه .

اوس جواب کوي بعضې خلک وایي چې ارحام طاهرات من الزنا وه .

محمود آلوسي وايي چې تخصيص د طهارة په طهارة من الزنا سره څه دليل نشته چې اعتماد پرې وشي سره له دې چې:

والعبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب.

ظاهر عام راغلې دي.

وقد ألفوا في هذا المطلب الرسائل واستدلوا له بما استدلوا.

والقول بأن ذلك قول الشيعة كما ادعاه الامام الرازي ناشئ من قلة التتبع.

چا چې دا قول کړې دي چې ايمان د اباو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ قول د شيعه ګانو دي لکه چې امام الرازي هم دا ويلي دي دې وايي دا قول را پيدا شوې له لږ تتبع نه دا وايي ددې تالاش نه دې کړي دلائل يې نه دي کتلي که دلائلو ته وکتل شي نو داد شيعه ګانو قول نه جمع غفيره د اهلسنت پرې قائله ده.

دا رنګې تفسير اللباب لابن عادل جلد ۱ صفحه ۲۰۹۴ هغې هم دغه عبارت دا مخکې چې کوم استدلال چې:

لم أزل أنقل من أصلاب الطاهرين الى أرحام الطاهرات والمشركون نجس.

دغه شان استدلال ده هم کړې دي.

دغه شان روح المعاني جلد ۱۰ صفحه ۱۳۵ د دغه آيت تفسير کې ليکي:

وتفسير الساجدين بالانبياء رواه جماعة منهم الطبراني والبزار وابونعيم عن ابن عباس

ايضاً الا انه رضي الله تعالى عنه فسر التقلب فيهم بالتنقل في اصلابهم حتى ولدته امه

عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ.

محمود آلوسي وايي:

وجوز على حمل التقلب على التنقل في الأصلاب أن يراد بالساجدين المؤمنون.

جائز شوه دا خبره چې تقلب په معنى د تنقل في الأصلاب اخلي نو بيا مراد له ساجدينو نه يو اځې انبياء مه اخله بلکې مؤمنين واخله استدلال به وشي په دې آيت سره.

على ايمان ابويه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كما ذهب اليه كثير من اجلة اهل السنة.

ډيرو اجلة د اهل سنت دې ته ذهاب کړې دي نو مراد له ساجدينو نه به مؤمنين شي مراد له تقلب نه به تصرف شي تصرف د روح ستا چې کوم دي دا را چليدلې دي په مؤمنينو کې.

نو محمود آلوسي وايي :

وأنا أخشى الكفر على من يقول فيهما رضي الله تعالى عنهما . زه يره د کفر لرمه په هغه چا چې قول کوي په حق د دغه دواړو کې چې والدين د نبي عليه السلام دي .

على رغم أنف علي القاري م واضرابه .

د ملا علي قاري وايي دا پوزه دې په خاورو ککړه شي او هم مثل دده .

بضد ذلك . چې دده خلاف يې کړي .

الا اني لا اقول بحجية الآية على هذا المطلب . وايي زما عقيده داده چې اباء مؤمنين دي خو دې آيت نه استدلال په حجية قول نه کومه بلکې حجيت له هغه حديث نه کومه چې :

أنقل من أصلاب الطاهرين الى أرحام الطاهرات .

وايي دې آيت نه اخذ نه کومه وايي دا تقلب په معنی د تنقل سره معنی بعيد ده .

دارنګې ايمان د ابوي النبي صلى الله عليه وسلم سره له اجدادو نه او خيرية ددوي باندې چې څوک قائلين دي استدلال د رواية د دلائل النبوة نه هم کولې شي .

دلائل النبوة للبيهقي جلد ١ صفحه ١٧۴:

أخبرنا ابو الحسن علي بن احمد بن محمد بن حفص المقرئ ببغداد قال حدثنا ابو عيسى بكار بن احمد بن بكار قال حدثنا أبو جعفر أحمد بن موسى بن سعيد املاء سنة ست وتسعين ومائتين قال حدثنا ابو جعفر محمد بن أبان القلانسي قال حدثنا ابو محمد عبدالله بن محمد بن ربيعة القدامي قال حدثنا مالك بن أنس عن الزهري عن انس بن مالك وعن ابي بكر بن الحارث بن هشام قالا بلغ لنبي صلى الله عليه وسلم ان رجالاً من كندة يزعمون أنه منهم .

رحمت عالم ته چا وويل چې د کنده د قبيلې څه خلک دي ګمان کوي چې نبي عليه السلام زمونږ د قبيلې نه دي .

فقال انما كان يقول ذاك العباس وابو سفيان بن حرب اذا قدما المدينة .

نبي عليه السلام فخر په نسب سره بنه ونه ګڼه وايي دا خبرې به عباس رضي الله عنه او ابو سفيان کولې کله چې مدينې منورې ته راغلل دې د پاره.

ليأمنا بذلك. چې په امن شي دوي.

دواړه چې راغلل دا به يې وويل چې نبي عليه السلام زمونږ د قبيلې نه دي البته اوس بنو کندة نه انکار نه کوي.

وانا لن ننتفي من ابائنا. مونږ د خپلو پلارانو نه نفي نه کوو.

نحن بنو النضر بن کنانة. هغه د خپلې قبيلې اصل ته ځي کنانه خو هغه نيکه کې شريک دي کنه دې نه وروسته.

وخطب رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال. خطبه يې وويله او په خطبه کې وويل.

انا محمد بن عبد الله بن عبد المطلب بن هاشم بن عبد مناف ابن قصي بن کلاب بن مرة بن کعب بن لؤي بن غالب بن فهر ابن مالك بن النضر بن کنانة بن خزيمة بن مدرکة بن الياس بن مضر بن نزار.

دا خپل تاريخ يې ويلي.

وما افترق الناس فرقتين الا جعلني الله في خيرهما. دوه فرقې نه دي جوړې شوې مګر زه ګرځولې يمه خداى تعالى په غوره د هغوي کې نسبونه چې دوه شوي زه په غوره کې راغلي يمه.

نو که مشرک او نجس ورته څوک وايي العياذ بالله نو هغې باندې اطلاق د خيريت نه کيږي د خير له ټکي نه استدلال دي چې د مبارک خپل نسب ته خير ويلي.

دريم دليل د دغه قائلينو الجامع الصغير من حديث البشير النذير جلد ۱ صفحه ۲۳۰، دارنګې التسير بشرح الجامع الصغير للمناوي جلد ۱ صفحه ۷۶۰ هغې کې د رحمت عالم الفاظ دا دي روايت د بيهقي دي په دلائل کې:

فأنا خيركم نسباً وخيركم أباً. زه غوره ستاسې نه يم په نسب کې او زه غوره ستاسې نه يم له جهته د پلار نه مخاطب دلته قريشيان دي يا صحابه کرام دي نو د هغوي پلارانو کې خو

مؤمنان وه که دا مشرک واي نو څنګه يې د هغوي په مؤمن پلار غوره کښي زه په تاسو کې د پلار په لحاظ هم خیر یمه او د نسب په لحاظ هم خیر یمه.

علامه مناوي رَحِمَهُ اللَّهُ دلته شرحه کوي:

خيركم اباً وخيركم اماً.

دا په الفاظو د حدیث کې نشته علامه مناوي شرح کوي چې د پلار په لحاظ خیر دي نو د مور په لحاظ هم خیر دي نسب دواړو ته شامل دي.

كنزالعمال في سنن الاقوال والافعال جلد ۱۱ صفحه ۴۰۱ کې دا مذکور دي.

الفتح الكبير في ضم الزيادة الى الجامع الصغير جلد ۱ صفحه ۲۵۷ کې هم دا مذکور دي دا هغه اول مسلک شو اباء اجداد کل مؤمنین وه استدلال د ایات نه شو تام یا غیر تام خو استدلال له دغه ځای نه کوي او یا د هغه حدیث نه شو.

أنقل من أصلاب الطاهرين الى أرحام الطاهرات.

او مشرکین نجس دي طاهر ورته نه شي ویلې د مفسرینو اقوال ما ذکر کړه.

**المسلك الثاني: هغه دادی:**

ابوي النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماتا على الكفر ثم احياهما الله تعالى فأمنا به.

خدای تعالی بیا ژوندي کړه بیا یې ایمان قبول کړو.

تفسير حقي جلد ۵ صفحه ۱۸۲ مسلک ثاني:

بقي ههنا أن الجمع الغفير من العلماء ذهبوا الى أن النبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مر على عقبة الحجون في حجة الوداع.

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تیرید لو په عقبة الحجون باندې په حجة الوداع کې، عقبة الحجون د ځای نوم دي ابوای ته نزدې دي.

فسأل الله أن يحيي أمه. سوال یې وکړو خدای تعالی ته چې مور ورته را ژوندي کړي.

فأحياها. ورته را ژوندي يې کړه.

فأمنت به. ایمان یې پرې راوړ.

وردها الله تعالى اى روحها . قال في انسان العيون لا يقال على ثبوت هذا الخبر و صحته التي صرح بها غير واحد من الحفاظ ولم يلتفتوا الى من طعن فيه .

واي قول دې نه شي کولې په صحت دد دې خبر کې طعني دي په کوم راوي نه لګول کیږي وروسته له ذکر د غیر واحد من الحفاظ نه چې هغوي دا په خپلو کتبو کې را اخلي او التفات نه کوي الى من طعن فيه څوک هم جرحه نه کوي او دا روایت ذکر کوي یعنې محدثین چې تخریج دد دې حدیث کوي دې باندې دې اعتماد وشي .

که څوک دا اعتراض کوي چې له مرګ نه وروسته ایمان څنګه قبول شو هغه خو د بعد الغرغره هم قبول نه وي دا څنګه قبول شو .

نو جواب دا کوي :

لانا نقول هذا من جملة خصوصياته صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . داد نبي عَلَيْهِ السَّلَام خصوصیات شول.

علامه قرطبي ذکر کوي :

قد احيى الله تعالى على يده جماعة من الموتى . دا يې معجزه وه .

فاذا ثبت ذلك فيما يمنع ايمان أبويه بعد إحيائهما .

څه مانع دي له دې نه چې خدای تعالی به ژوندي کړې وي ایمان به یې راوړې وي.

ويكون زيادة في كرامته وفضيلته ولو لم يكن احياء أبويه نافعا لإيمانهما وتصديقهما لما احييا . يقول الفقير .

اسماعیل حقي وايي :

قد أشبعنا الكلام في ايمان أبوي النبي عَلَيْهِ السَّلَام وكذا ايمان عمه أبي طالب .

دا اختلاف لري د اهلسنت نه قاضي ثناء الله پاني پتي او اسماعیل حقي قائل دي د ایمان د ابو طالب .

و جده عبد المطلب بعد الاحياء في سورة البقرة عند قوله تعالى : ﴿وَلَا تُسْأَلُ عَنْ أَصْحَابِ الْجَحِيمِ﴾ .

وايي دا ما چیرلي .

فأرجع اليه. هغې ته ذهاب وکړه.

وجاء ان عبد المطلب رفض في آخره عمره عبادة الاصنام ووحد الله وتؤثر عنه سنين جاء القرآن بأكثرها وجاءت السنة بها منها الوفاء بالنذر.

کوم کارونه چې په شريعت کې دي هغه به ده کول وفاء په نذر.

والمنع من نكاح المحارم وقطع يد السارق والنهي عن قتل الموءودة وتحريم الخمر والزنى وان لا يطوف بالبيت عريان كذا في كلام بسط ابن الجوزي.

وقال في ابكار الافكار في مشكل الأخبار أن عبد المطلب قد كان يتعبد في كثير من احواله بشريعة ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ويتمسك بسنن اسماعيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ولم ينكر نبوة محمد عَلَيْهِ السَّلَامُ.

همدغه عباراتو طرف ته ميلان السيرة الحلبية في سيرة الامين المأمون جلد ۱ صفحه ۸۳ هم کوي هغه وايي:

وإذا ثبت ذلك فما يمنع إيمان أبويه بعد احيائهما. کوم مانع دي د ايمان د أبوي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه وروسته د ژوندي والې د دواړو نه.

حاشية الشهاب الخفاجي على البيضاوي جلد ۴ صفحه ۱۴۱ دا چې توبه بعد الغرغرة قبليږي او کنه دې وايي:

فهو حق. دا ثابته ده د بعضې خواصو باره کې.

كما قبل ايمان ابوي النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بعد الغرغرة.

دارنګې التذكرة القرطبي جلد ۱ صفحه ۱۲: اخرجه ابوبكر احمد بن علي الخطيب في كتاب السابق واللاحق داد کتاب نوم دي مخکني احاديث وروستني احاديث.

وابو حفص عمر بن شاهين في الناسخ والمنسوخ. ناسخ او منسوخ احاديث مخالفين چې ترې استدلالات کوي د روايت د مسلم نه يې کوي:

إن أبي وأباك في النار. هغه صحابي ته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايلي وه زما اب او ستا اب في النار دي.

د سند په لحاظ قوي دي خو دعوي يې د کفر ده او في النار دليل د کفر نه دي نبي عليه السلام په دوه قبرونو روان وه وايي دا دواړه معذب دي راجح قول دادی چې دا قبرونه د مسلمانانو وه يو چغل خوره او بل لا يستنزه من البول نو دادی د ګناه په وجه معذب دي في النار وګڼلې شول.

إن أبي وأباك في النار.

روايت د مسلم دليل د کفر نه دي دليل د تعذيب دي او د في النار دي په شفاعت د نبي عليه السلام به له هغې نه خارج شي دادمخالفينو قوي دليل دي.

يا لا تسئل عن اصحاب الجحيم لا تسئل لا تُسئل قرأتين دي که دا مجهول شي معروف قرائت دادی د جمهورو:

لا تُسئل عن اصحاب الجحيم. دا تسلي د محبوب شوه چې کفارو به ايمان نه راوړو دې به ډير غمجن وه.

﴿فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ عَلَىٰ آثَارِهِمْ إِن لَّمْ يُؤْمِنُوا بِهَٰذَا الْحَدِيثِ أَسَفًا﴾ نو دې به ډير خفه وه نو تسلي راغله.

لا تُسئل. ته نه پوښتلې کيږې.

عن اصحاب الجحيم. مشرکين چې ايمان نه راوړي جهنم ته ځي تا نه خو يې تپوس نه کيږي ولې پرې خفه يې داد جمهورو قرائت دي.

دويم قرائت د نافعه دي.

لا تسئل عن اصحاب الجحيم. ته تپوس مه کوه د اصحاب الجحيم نه دغه قرائت نه دوي استدلال کوي سيوطي رحمه الله په ايمان د أبوي النبي صلى الله عليه وسلم باندې رساله ليکلي ده.

الحاوي للفتاوى کې په هغې کې نسبت د ضعف او د انقطاع کړې دې لره چې دا حديث منقطع دې ضعيف دې د ابن عباس رضي الله عنه شرحه يې دا را اخيستې چې نبي عليه السلام فرمايي:

قال لیت شعري ما فعل أبواي فنزلت. زما مور او پلار به په څه حال باندې وي وايي هغه رخت کې ورته دا راغې.

لاتسئل عن اصحاب الجحیم . نو اصحاب الجحیم يې ابوي شول.

گوریٔ دا شان نزول په مقابل د هغه قوي يو خو دا قرائت د نافع دي په مقابله د جمهورو کې دا قبول نه دي.

جمهور وايي :

لا تُسئل عن اصحاب الجحیم . تسلي ده نبي عَلَيْهِ السَّلَام ده لا تُسئل نه دي.

لا تُسئل عن اصحاب الجحیم . مجهوله صیغه ده تسلي ده د اهل د جهنم د مشرکینو تا نه پوښتنه نه کیږي زړه پرې مه خفه کوه.

او لا تسئل . پوښتنه مه کوه د جحیم والا زمونږ نه یعني اهل د جحیم مونږ نه مغفرت مه غواړه ، دې قرائت د نافع نه دوي استدلال کوي.

او دې کې يو ضعیف روایت د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پیش کوي چې ده شان نزول کې دا ویلي وه نو دا روایت قوي نه دي ضعیف دي.

او دا قرائت په مقابله دَ قرائت د جمهورو کې کمزورې دي دغه دوه استدلالات د دوي قوي دي يو هغه روایت د مسلم دي يو دا دي سره دې به وروسته عبارت به زه ذکر کړم مفسرین وايي چې : لا تُسئل کې لا تسئل روایه عن اصحاب الجحیم کې أبوي النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې روایت ضعیف باندې ثابت کړه دا ترې مراد کړه چې اصحاب الجحیم په حالت د برزخ کې دلیل د کفر نه دي اصحاب الجحیم خو اصحاب النار شول او په قبر کې خو مؤمن ته هم عذاب ورکول کیږي دلیل د کفر نه دي په دعوی يې دلیل نشته دي.

دې حدیث ته گوري دا حدیث خطیب بغدادي په السابق واللاحق کې ابن شاهین في الناسخ والمنسوخ کې را اخلي.

او س چې ددې په خلاف څو مره روایات دي هغه دې منسوخ کړه خطیب بغدادي وايي هغه روایات سابق دي دا روایات لاحق دي.

وروسته دا راغلي ابن شاهين وايي هغه حديث منسوخه دي دا حديث ناسخ دي هغه دادی :

باسناديهما عن عائشة رضي الله عنها قالت حج بنا رسول الله صلى الله عليه وسلم حجة الوداع .

حج يې وکړو نو حجة الوداع شوه خو نور روايات مخکې شول دا خو آخري حج دي آخري ايام دي .

فمر بي على عقبة الحجون . د ځای نوم دي .

وهو باك حزين مغتم . ډير غمجن د ژړيدونکي او خفه وه دومره يې ژړل .

فبكيت لبكائه صلى الله عليه وسلم . دده له وجې ما هم وژړل .

ثم انه طفراي وثب . بيا يې توپ کړه پاځيده يو ناڅاپه .

فنزل فقال يا حميراء استمسكي . او ښ باندې زين يا کته واچوه .

فاستندت الى جنب البعير فمكث عني طويلا ثم عاد الي وهو فرح متبسم .

بيا راغې او خندل يې خوشحاله وه .

فقلت له بابي انت وامي يا رسول الله صلى الله عليه وسلم نزلت من عندي وانت باك حزين مغتم فبكيت لبكائك يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ثم انك عدت الي وانت فرح متبسم فعن ماذا يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ؟ فقال مررت بقبر امي آمنة. د مور بي بي په قبر تير شومه .

فسألت الله ربي ان يحييها . ما د رب کريم نه سوال وکړو چې دا راته ژوندي کړه .

فاحياها فآمنت بي . خدای تعالی را ژوندي کړه په ما يې ايمان راوړو .

او قال فآمنت وردها الله عز وجل . واپس خدای تعالی رد کړه بيرته مو دفن کړه .

لفظ الخطيب دي .

وقد ذكر السهيلي في الروض الانف باسناد فيه مجهولون ان الله تعالى احيا له اباه وامه وامنا به .

ددې حديث سند کې مجهولين دي چې مور پلار دواړه يې ورته ژوندي کړه هغه

مخکې حدیث دي چې موريې ور ته ژوندي کړه .

قال الشیخ المؤلف رَحِمَهُ اللهُ ولا تعارض والحمد لله لان احیاهما متأخر عن النهي بالاستغفار لهما .

که څوک وایي چې په احادیثو کې راغلي دي چې ما د مور بخښنه غوښتله خدای تعالی منع کړمه د مور د زیارت اجازت مې غوښته اجازت یې راکړ هغه حدیث سره څه کوي .

نو دې وایي تعارض نشته دي دا بیا ژوندي کیدل متأخر دي د نهي بالاستغفار نه.

بدلیل حدیث عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ان ذلك كان في حجة الوداع وكذلك جعله ابن شاهين ناسخاً لما ذكر من الاخبار .

دا یې ناسخ کړه هغې لره هغه منسوخ شو په دې .

داد علامه قرطبي د تذکرې عبارت وه اخر کې وایي :

لیس احیاؤهما وایمانهما یمتنع عقلاً ولا شرعاً .

ددوي ژوندي کیدل او ایمان راوړل نه عقلاً ممنوع دي نه شرعاً ممنوع دي .

فقد ورد في الكتاب إحياء قتيل بني اسرائيل وإخباره بقاتله .

قرآن کریم کې قصه وارد ده .

كان عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ يحيى الموتى وكذلك نبينا عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أحيا الله تعالى على يديه جماعة من الموتى واذا ثبت هذا فما يمنع من إيمانهما بعد إحيائهما زيادة في كرامته وفضيلته .

**المسلك الثالث** : دریم مسلک دادی : ماتا على الفترة .

د فقه اکبر نه دري جوابونه کولې شي :

(۱) تصنیف د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ نه دي الزام نه شو .

(۲) دا چې نسخې متغائرې دي یو کې دا عبارت نشته بلکه کې ماتا دي او په دریمه کې ما ماتا دي .

(۳) او بل جواب دادی چې تقدیر په کې راوباسه :

ابوي النبي صلى الله عليه وسلم ماتا في زمن الكفر . في الكفر معنى في زمن الكفر .

نو دا به معني شي د عبارت د هغه چا سره چې ماتا في زمن الفترة .

دې کې د امام ابوحنيفه رحمه الله د ماتريدي رايه ښکاره کړه چې څوک د فترة په زمانه کې مړه وي شرک ترې ثابت وي مشرک يې ګڼم شرک ثابت نه وي توقف کومه نو د امامنا قول د توقف شو شرکيات يې څوک نه شي ښودلې او دې نوم ته يې هم سوچ نه کوي د کومو صحابه وو لحد کې چې نبي عليه السلام ځملاستلي دي علماء متفق دي په دې چې دغه سړي خداى تعالى د قبر له عذاب نه ساتلي ځکه چې دې لحد سره د نبي عليه السلام وجود مبارک ولګيده .

دلته اور نه شي راتلې . شفاء کې قاضي عياض صاحب روايت ذکر کوي :

چې يو رومال وه دسمال هغه به نبي اکرم صلى الله عليه وسلم استعمالوه په هغه کور کې اور ولګيدلو ټول کور وسوزيدلو دغه رومال نه دي سوي ځکه چې دغه رومال د نبي عليه السلام وجود سره لګيدلي دي په دې اور تاثير نه کوي .

نو هغه رحم او خيټه چې د محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم په هغې کې ۹ يا ۱۰ مياشتې تيرې شوې دي هغه دې څنګه په اور معذب شي نبي اکرم صلى الله عليه وسلم په دې خفه کيږي .

استدلالات را روان دي د محدثينو چې تاسو نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ته تکليف مه ورکوي د مفسر قول به راشي له دې نه واي غټ تکليف کوم يو دي چې څوک يې مور او پلار ته مشرک ووايي .

نو د يو چا قول ته صحيح تاويل په کار وي که داد امامنا قول شي هم بالفرض والتقدير چې ماتا على الکفر ماتا على زمن الکفر چې زمانه د فترة وه زمانه د جاهليت وه په هغه زمانه کې مړه دي او نور قول د اهل فترة باره کې د اشاعره وو ماتريديه وو مختلف دي معروف دي بس هغې ته اشاره وکړه هغه خو متن دي اشاره قدرې کوي .

دريم مسلک دا دى چې دا په زمانه د فترة کې مړه دي د اشاعره وو ماتريديه وو قول ذکر شو .

الخصال الموجبة لدخول النار جلد ۲ صفحه ۱۳۰ دې وايي :

قلت فهذه مسألة دقيقة وقد خاض فيها الناس قديماً.

ايمان د أبوي النبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا يوه مسئله باريکه ده وايي د پخوا را هيسې په کې خلک خوض کوي.

اصل کې خوض په اوبو کې غوپه کيدلو ته وايي يعنې ژور په کې کوزيږي ډير ژور بحثونه په کې کوي.

و مما خلاف فيه ان ابوي المصطفى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لم يدركا الاسلام.

ابوي النبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چې دي دوي د اسلام درک نه دي کړې ځکه دوي مخکې وفات شوې.

فهما من اهل الفترة بيقين. يقينا د اهل فطرة نه شول.

واهل الفترة فيهما مذاهب كثيرة ذكرها الامام ابن القيم وغيره والصواب فيها الكف عن هذا الموضوع.

حقه داده چې سړي غلي شي دې موضوع نه.

سلباً او ايجاباً. خو دا صاحب د کتاب ماتريدي دي چې شرک ترې ثابت نه شو نو قول د توقف شو او که څوک وايي چې ته ولې د ايمان قول کوي نو مونږ خو هغه روايت ګورو چې وروسته ايمان ثابت دي خداى تعالى ژوندي کړې بيا يې ايمان راوړي.

فليس الحساب موكولاً الى اجتهادنا بل هو الله وحده دون سواه قال تعالى: ﴿لَا يُسْأَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْأَلُونَ﴾ ۲۳ سورة الانبياء.

تفسير حقي جلد ۱ صفه ۲۸۳ کې ذکر کوي:

واعلم أن السلف إختلفوا في أن أبوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هل ماتا على الكفر اولا ذهب الى الثاني جماعة متمسكين على طهارة نسبه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من دنس الشرك وشين الكفر وعبادة قريش صنما. وان كانت مشهورة بين الناس لكن الصواب خلافه لقول ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ: ﴿وَاجْنُبْنِي وَبَنِيَّ أَن نَّعْبُدَ الْأَصْنَامَ﴾

عجيب استدلال دې هم کوي قريشو خاندان د عبد المطلب واي دوي شرک نه دي کړي ځکه ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام دعاء کړي وه وساتي ما او زما اولاد د بت د عبادت نه دده دعاء قبوله ده په حق د قريشيانو کې.

وقوله تعالى في حق ابراهيم: ﴿وَجَعَلَهَا كَلِمَةً بَاقِيَةً فِي عَقِبِهِ﴾ وذهب الى الاول.

چې په کفر مړه ذي.

جمع منهم صاحب التيسير حيث قال لما امر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بتبشير المؤمنين وانذار الكافرين كان يذكر عقوبات الكفار فقام رجل يا رسول الله اين والدي فقال في النار فحزن الرجل فقال عَلَيْهِ السَّلَام: ان والديك ووالدي ووالدي ابراهيم في النار.

دې نه يې استدلال کړې دي.

فنزل قوله تعالى: ﴿وَلَا تُسْأَلُ عَنْ أَصْحَابِ الْجَحِيمِ﴾ فلم يسألوه شيئا بعد ذلك وهو كقوله: ﴿لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ﴾. وذهب نفر من هذا الجمع بنجاتهما من النار.

څه علماو ددې جمعې نه په نجات د والدينو قائل دی.

څه علماو دې ته ذهاب کړې دی چې دا وه على الكفر بيا ژوندي شول ايمان يې راوړ چې نجات د اور نه وروسته حاصل دي.

دې ته ذهاب کړې امام قرطبي:

حيث قال في التذكرة ان عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قالت حج بنا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حجة الوداع فمر على عقبة الحجون الخ

هغه حديث يې ذکر کړي مخکې چې تير شو.

دغه شان حاشية رد المختار على الدر المختار جلد ۳ صفحه ۱۸۴ دا په هغې کې مستقل باب لګوي: ابوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ايمان په موضوع:

مطلب في الكلام على ابوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واهل الفترة ولا يقال ان فيه اساءة ادب لاقتضائه كفر الأبوين الشريفين مع أن الله تعالى احياهما له وامنا به كما ورد في حديث ضعيف.

حديث د سند په اعتبار سره ضعيف دي خو مخكې ما اشاره وكړه چې آئمه وو حفاظو پرې اعتماد كړي بدون جرح دي باندې اعتماد كولې شي .

لانا نقول ان الحديث اعم بدليل رواية الطبراني وأبي نعيم وابن عساكر خرجت من نكاح ولم أخرج من سفاح من لدن آدم الى ان ولدني أبي وأمي لم يصبني من سفاح الجاهلية شيء واحياء الأبوين بعد موتهما لا ينافي كون النكاح كان في زمن الكفر ولا ينافي ايضاً ما قاله الامام في الفقه الاكبر من ان والديه ماتا على الكفر .

دې نسخې ته يې ذهاب كړې .

ولا ما في صحيح مسلم استأذنت ربي ان استغفر لامي فلم يأذن لي وما فيه ايضاً .

دا رنګې :

ان رجلاً قال يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اين ابي قال في النار .

وايي دا روايت د دې نورو استدلالاتو د ماتا على الكفر سره څه منافات نه لري ولې :

لامكان ان يكون الاحياء بعد ذلك لانه كان في حجة الوداع وكون الايمان عند المعاينة غير نافع .

كه څوك وايي چې معائنه راشي زنكدن نه وروسته ايمان نه قبليږي غرغري نه وروسته .

فكيف بعد الموت فذاك في غير الخصوصية التي اكرم الله بها نبيه .

دا خصوصيات دي او مسئله په غير خصوصيت كې ده .

و اما الاستدلال على نجاتهما . چا چې ويلي چې على الفترة مړه دي په هغه وخت كې چې شرك چا نه ثابت نه وي هغه مغفور دي وايي هغه استدلال د اشاعره وو دي .

و اما الاستدلال على نجاتهما بانهما ماتا في زمن الفترة فهو مبني على اصول الاشاعرة ان من مات ولم تبلغه الدعوى يموت ناجياً .

اما الماتريدية فان مات قبل مضي مدة يمكنه فيها التأمل ولم يعتقد ايماناً ولا كفرا فلا

عقاب عليه .

الفواكه الدواني على رسالة ابن ابي زيد القيرواني جلد ١ صفحه ٢٧٢ دا ماتا على الفترة باندې بحث کوي :

وثالث الاقسام . دريم قسم دي وايي چې زمانې د فترة خلک دري قسمه دي :

(١) قسم چې شرک ترې ثابت شو په اتفاق د اشاعره ماتريديه وو باندې معذب في النار دي مشرکينو غوندې دي .

(٢) قسم چې هغوي نه توحيد ثابت شو لکه ورقه ابن نوفل او زيد عمر بن نحيل او يا بعضې نور نو هغه مؤمنين دي .

(٣) قسم : لم يشرك ولم يوحد نه ترې شرک ثابت دي نه ترې توحيد ثابت دي .

ولا دخل في شريعة بل فنى عمره على حين غفلة وهؤلاء اهل الفترة حقيقة وحكمهم عدم استحقاق الثواب والعقاب وهم في المشيئة ولا يوصفون بايمان ولا كفر .

داد ما تريديانو اصل شو .

وما قيل أن أبا حنيفة صرح في الفقه الأكبر بان أبوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماتا على الكفر هو مبني على القول بوجوب المعرفة بالعقل .

هغه دې پسې تللې دي چې پيغمبر نه ذې تللې هغه ځای ته په عقل مواخذه کيږي.

نعم إن ورد نص صحيح أن الله أحياهما وآمنا به صلى وجب القول به .

الفقه على المذاهب الاربعة جلد ۴ صفحه ١٢ :

ومما يوجب العجب العجاب قول بعضهم . هغه چې عجوبه لازموي قول د بعضو دي.

أن أبوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماتا على الكفر و في الوقت نفسه يذكرون أن آمنة كانت تحوطها الملائكة الكرام .

وايي همدغه صاحب چې دې ته ماتا على الكفر وايي همدغه صاحب بيا ذکر کوي چې آمنه بي بي چې وه فرشتي به ورته کرد چاپيره تاويدي .

وكان يرى نور النبوة في جبهة عبدالله الخ .د عبد الله په تندي كې به يې نور د نبوة كتلو .

ماذكروه فهل المشرك النجس تزفه الملائكة وتخالطه الارواح الطاهرة .

مشرک نجس وي داسې حالات پرې راځي چې هغه دې نور ګوري يا دې فرښتې ګوري يا دې هغه ورته نزدې کيږي .

ويرى من ارهاصات النبوة ما يفيد انه من أقرب المقربين الى ربه ؟ وأغرب من هذا قولهم ان الله تعالى قد احيا ابوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فامنا به وماتا بعد ذلك .

اصل کې صاحب د فقه على مذاهب الاربعة د فترة قول ته ذهاب کوي خو هغلته ذهاب کوي او هغلته بيا ايمان ثابتوي چې هغوي د اهل فترة نه وه خو شرک ترې نه ثابت نه وه نو دې وايي چې دا اغرب قول دی .

ولعل قائل هذا نسي ان قدرة الله كانت صالحة ايضاً لأن يهديهما الى توحيد الاله في حال حياتهما .

وای ددې قول والا چې دې له ياد يې وتلي دا خبره چې خدای تعالى يې بيا ژوندي کوي ايمان پرې راوړي نو خدای تعالى په هغه وخت کې هم دوي ته هدايت کولې شو هملته يې ورته هدايت کړي چې دوي لا ژوندي وه واي هغې طرف ته ذهاب په کار دي .

كما هدى زيد بن عمرو بن نفيل وغيره بل يصونهما عن عبادة الأصنام اكراماً لنور النبوة الذي أشرق على جميع العالم فأخرجه من الظلمات الى النور وأيهما أقرب الى تعلق القدرة هدايتهما قبل الموت او إحياؤهما لمجرد الايمان واماتتهما فوراً على أن الايمان بعد الموت والمعاينة لا معنى له .

دې وايي دې باندې بيا نور اعتراضونه راځي دا ژوندي شول بيا ايمان راوړو غرغري نه بعد ايمان قبليږي او نه قبليږي .نور اعتراضونه پرې کيدې شي بيا د خدای تعالى قدرت هغې کې هم کيدې شي چې دوي ژوندي وه هدايت يې ورته کړې وي يعنې خپله قائل ددې دي چې دوي په ايمان مړه دي. دا هغه جوابونه کوي که څوک وايي چې دا خصوصيت د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ معجزه وه نو دې وايي:

أن المسألة معجزة للنبي صلى الله عليه وسلم قلنا أن المعجزة عند الضرورة واي ضرورة في هذا.

يعنې دا مخکې نه په ايمان مړه دي نو څه ضرورت دي چې بيا يې ژوندي کوي ايمان راوړي.

اذ يكفي أن يغفر الله لهما بدون خرق للنظم كل هذا كلام لا يصح ذكره في الكتب العلمية ولا المناقشة فيه بل الحق ان اجداد النبي صلى الله عليه وسلم كانوا موحدين جميعاً.

حقه داده چې دا ټول موحدين وه دا وروسته چون چرا په کې نه ده په کار چې دا بيا ژوندي شول سند ضعيف دي دې لحاظ سره دې دا خبره کوي بيا نور اعتراضونه دربانديې کيږي بعد الغرغره ايمان قبول دي که نه دي.

وما نقل عن بعضهم انه تأثر بعادات قومه.

که بعضونه دا منقول دي چې عادات د قوم هغه ده هم خپل کړې وه.

لم يكن مشركاً مطلقاً انظر ما روي عن جده عبد المطلب وهو يتضرع إلى الله ويستغيث به من أصحاب الفيل حيث يقول.

واي د عبد المطلب صاحب قول ته گوره چې دده له قول نه توحيد ثابتيږي که شرک ترې ثابتيږي.

شعر د عبد المطلب صاحب دي.

لاهم ان المرء يمنع رحله فامنع رحالك  والنصر على آل الصليب وعابديه اليوم آلك

د حرم شريف څينځير د دروازې يې نيولې وه او دا دعا يې کوله او د مکې معظمې خلکو ته يې وويل تاسو وځئ لاړ شي اصحاب فيلو ته ورغې مخې ته او بنان يې د ابرهه لښکر نيولې وه نو دې ورغې دې خو ډير ښائسته انسان وه.

نو د طائف يو کس ابرهه سره ترجمان وه هغه ته يې ويلي چې دې ابرهه ته ما وروله هغه سره څه خبرې کوم چې ورېې ويستلو نو دې دومره با رُعبه وه چې هغه ته خپل تخت د بادشاهي جوړه څان سره يې کينولو وايي دا څوک ده وايي داد مکې معظمې له اشرافو نه دي او داد مکې معظمې د قوم او ددې علاقې مشر دي د هغه دا خيال وه چې دا راغلې دي د مکې معظمې سوال کوي چې جنګ مه کوه څه لاړ شه نو زه به يې ومنمه.

زه به ورته ووايمه چې ستاسو يو قريشي راغلې دي زمونږ علاقه کې زمونږ د کعبې بې آدبي کړي بس ددې معافي وغواړي مونږ په دا کار نه کوو واپس به شو څوک تللي وه په يمن کې د ابرهه د کعبې مينځ کې قاذورات کړې وه نو په هغې دې غصه شوې وه نو ابرهه ورته وويل چې څنګه راغلي وايي دلته زما اوښان ستا کسانو نيولې دي هغه اوښان راکړه وايي ما خو وويل چې ته کعبه خلاصول غواړې ته د اوښانو له غمه راغلې يې.

عبد المطلب صاحب ورته وويل چې زه د اوښانو رب يمه يعنې څښتن يمه د کعبې خپل رب شته هغه به يې درنه وساتي ته راشه وريانډې نو دا څه عقيده ده عقيده د توحيد ده که نه ده بتان نه يادوي چې هلته بتان پراته دي کعبه به درنه خلاصه کړي الله يادوي.

شعر ته ګورئ :

يا الله ان المرء يمنع رحله.

انسانانو کې هر ذات او هر سړې هغه خپل رحل کورني عيال بچ کوي.

فامنع رحالك. ته هم خپل اهل بچ کړه.

وانصر على آل الصليب وعابديه اليوم آلك. په آل د صليب چې عيسويان دي عابدينو د صليب باندې نن ورځ مدد وکړه آلك د اتباعو خپلو چې څوک ستا تابعدار وي چې مونږ يو او هغوي چې ستا تابعدار نه دي د هغوي مقابله کې زمونږ مدد وکړه.

دا شعر دده دليل د توحيد دي که د شرک.

نو صاحب د الفقه على المذاهب الاربعة ليکي :

فهل هذا كلام وثني يعبد الصنم أو كلام موحد مخلص لربه ؟

چې داد وثني بت پرست شعر دي او که داد موحد مخلص دي بيا وروسته وايي چې اصلاً مسئله چې جوړه کړي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ نه منقول دي ماتا على الكفر وايي دي لانجه جوړه کړې.

دا کوم خلک چې مخالفت کوي وايي دې ځای نه شروع ده او :

ان أبي واباك في النار. دې نه اختلاف شروع ده جواب کوي :

اما قول ابي حنيفة رَحِمَهُ ٱللَّهُ فإن الذي حمله على ذلك هو تأييد مذهبه من اهل الفترة غير ناجين اذا أشركوا مع الله غيره فهم ملزمون بتوحيد الله بعقولهم.

داده خپل اصل ثابتول غوښتل بيا وايي:

فأما الأدلة على أن أهل الفترة ناجون قطعية في نظري وذلك لان الله تعالى قال: ﴿وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا﴾.

دارنګې تفسير مظهري د هغه آيت نه جواب کوي:

لا تسئل عن اصحاب الجحيم فلا دليل فيه على ان المراد بأصحاب الجحيم أبواه صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وعلى تقدير التسليم فتلك الآية لا تدل على كفرهما فان المؤمن قد يكون من أصحاب الجحيم لإكتساب بعض المعاصي حتى تدركه المغفرة بشفاعة شافع او دون ذلك أو يبلغ أجله.

وقد صح عنه صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انه قال بعثت من خير قرون بني ادم قرنا فقرنا حتى بعثت من القرن الذي كنت فيه رواه البخاري من حديث ابي هريرة.

وقال صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما افترق الناس فرقتين الا جعلني الله في خيرهما فاخرجت من بين ابوي ولم يصبني شيء من عهد الجاهلية خرجت من نكاح لم اخرج من سفاح من لدن آدم حتى إنتهت إلى أبي وأمي فأنا خيركم نفساً وخيركم أبا.

همغه حديث نه يې استدلال وکړو دا روايت د حضرت انس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دي په دلائل النبوة کې او دلائل النبوة د ابي نعيم کې داد ابن عباس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ روايت دہ.

وقد صنف الشيخ الاجل جلال الدين السيوطي رَحِمَهُ ٱللَّهُ في اثبات أسلام آباء النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رسائل واخذت من تلك الرسائل رسالة فذكرت فيها ما يثبت اسلامهم ويفيد اجوبة شافية لما يدل على خلافه.

الحاوي للفتاوى للسيوطي جلد ۱ صفحه ۲۳۱:

فصل قال السهيلي في الروض الالف بعد أن اورد حديث ان ابي وا باك في النار مانصه ولنا ليس لنا ان نقول نحن هذا في أبويه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لقوله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لا تؤذوا الأحياء بسبب الاموات .

د مړو په وجه ژوندو ته تکليف مه ورکوي نو د مړو پسې خبرې ژوندي خفه کوي ،

والله تعالى يقول : ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يُؤْذُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ﴾ .

دارنګې الحاوي للفتاوى للسيوطي جلد ۲ صفحه ۲۱۸ هغه دريم مسلک چې خداى تعالى ژوندي کړې بيا يې ايمان راوړي د هغې ذکر کوي :

المسلك الرابع : وهذا المسلك مال اليه طائفة كثيرة من حفاظ المحدثين وغيرهم .

دې ته دې خلکو ذهاب کړې دې چې دا بيا ژوندي شوې دي .

منهم ابن شاهين والحافظ ابو بكر الخطيب البغدادي .

والسهيلي والقرطبي والمحب الطبري والعلامة ناصر الدين بن المنير وغيرهم واستدلوا لذلك بما اخرجه ابن شاهين في الناسخ والمنسوخ والخطيب البغدادي في السابق واللاحق والدار قطني وابن عساكر كلاهما في غرائب مالك بسند ضعيف عن عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قالت حج بنا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حجة الوداع فمر بي على عقبة بالحجون وهو باك حزين مغتم فنزل فمكث عني طويلاً ثم عاد الي وهو فرح متبسم فقلت له فقال ذهبت لقبر أمي فسألت الله ان يحييها فاحياها فآمنت بي وردها الله .

دا حديث مخکې تير شوې وه .

دارنګې الحاوي للفتاوى جلد ۲ صفحه ۲۲۱ :

قال البيهقي في شعب الايمان اخبرنا ابو الحسين بن بشران انا ابو جعفر الرزار حدثنا يحيى بن جعفر اخبرنا زيد بن الحباب اخبرنا يس بن معاذ حدثنا عبد الله بن قريد عن طلق بن علي قال سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول لو أدركت والدي أو أحدهما وأنا في صلاة العشاء .

که زما مور او پلار ژوندي وې او ما هغوي موندلي وي او یا یو ژوندې وي زه د ماخوستن په مونځ وي مثلا او ما لوستلي وې په هغې کې بفاتحة الکتاب الحمد مې لوستلې وي ولاړ وي په مانځه .

تنادي یا محمد لاجبتها لبیك . چې ما ته یې آواز کولې .

یا محمد لاجبتها لبیك . ما به مانځه کې جواب ورکولې چې لبیك .

دا حدیث دلالت النص دې په تکریم د أبوي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې نص په دې خبره کې دي چې د مور او پلار تکریم په کار دي ولو که داخل د صلاة کې وي چغه ووهلې شي د هغوي اطاعت په کار وي خیر دې هغه مونځ به بیا وکړي .

روایت د مسلم د جریج هم پرې دال دي چې داخل د مانځه کې مور چغه وهلې وه او هغه سلام نه وه ګرځولې او هغې ورته بنیري کړې وي بنیرې قبولې شوې وي دلالت النص په دې کې ده .

او اشارة النص اشاره ترې دا ثابتیږي چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپلو والدینو که حیات وي نو عزت به یې کولې هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د والدینو دومره تکریم کوي چې زه به مونځ ورته پرېږدمه او لبیک به ورته وایمه او ته بې انصافه راپاڅیږي هغوي ته مشرک وایي .

**تمت بالخیر**

**طالب دعاء : سید محمد ثواب**

**او**

**مولوي سید راز محمد هاشمي ثم الاندړوړي**

